# شانګله : يوه کلتوري او تاريخي مطالعه

# Shangla: Cultural and Historical Study

Atha ur Rehman Atha [1], Sher Zaman Seemab [2]

Humans are by nature social beings as they are naturally oriented towards their own kinship. Without this affiliation and co-existence which serve as stimuli for survival, human could not have ostensibly lived a peaceful and meaningful life. Across time, when human beings started early societies and began living together, it was this collectivism and cohesion that resulted in the formation of cultures and civilizations which then paved way to evolutionary progress. On a broader term, all the nations of the world and societies have their own distinct cultures that entail and serve to connect them to their authentic culture and identity their beliefs, rituals and customs, values, norms, morals and general behavior, and any other capabilities and social habits acquired by man as a member of society. Also, culture measures cognitive growth, quality and materialistic vitality of the society. Shangla is a poverty-stricken, remote and out-of-step mountainous region of Khyber Pakhtunkhwa with its population exceeding seven hundred and fifty thousand inhabitants is not without its distinct culture and colors steeped throughout its history. This research paper sheds light on the distinct culture and colors of Shangla region with reference to its history in an abridged way.

**Key words:** Shangla, culture, history, Social group, Cultural, historical, Civilization

## کلتور تهذيب

په نړۍ کښې اوسېدونکي ټول قامونه خپل يو ځانګړے تهذيبي ژوند او کلتوري اړخ لري کوم چې د هغوئ پيژندګلو وي ـ په دغه کلتور کښې يو شمېر خاصيتونه او قدرونه داسې هم وي چې د نړۍ د نورو قامونو د تهذيبونو او کلتورونو سره يو شان يا نزدې نزدې وي خو داسې ځانګړي قدرونه او خاصيتونه هم پکښې وي چې بيخي ځانګړے حيثيت لري ـ دغه ځانګړي خاصيتونه او قدرونه يو کلتور او تهذيب د نړۍ د نورو کلتورونو او تهذيبونو نه جدا کوي او د يو قام ځانګړې پيژندګلو جوړېږي ـ تهذيبونه او کلتورونه ټولنيز حقيقتونه دي ـ او د انسان د ټولنيزو مجبورو له کبله په وجود کښې راغلي

1 Ph.D Scholar, Pashto Academy UOP
2 Assistant Professor, Pashto Academy UOP

دي او مخ په وړاندې تلي دي ـ انسان ته ټولنيز ساکښ (Social Animal) هم ځکه وئيلے شوي چې انسان د خپلو نورو هم جنسونه جدا يوازې ژوند نۀ شي تېروے او په ټولنه کښې په ژوند تېرولو مجبوره دے۔ په ټولنه کښې هغۀ د نورو پکار رائحي او نور د هغۀ او دغسې د اجتماعي ژوند يو ټولنيز هيئت په وجود کښې رائحي او هم د دغه اختلاط نه تهذيبي او کلتوري قدرونه او اړخونه په وجود کښې رائحي ـ دلته دا خبره واضحه کول ضروري دي چې تهذيب يا کلتور څۀ شے دے؟ آيا د تهذيب او کلتور يو واضحه او کوټلے تعريف کېدے شي؟ په دغه خبره د پوهېدو لپاره ضروري ده چې اول دې د لفظ تهذيب کلتور خپله اولټوے شي ـ

په انګريزۍ کښې د لفظ کلتور يا تهذيب لپاره د کلچر تورے پکاروے شي ـ کلچر د لاطينۍ ژبې ټکے دے چې معني ئې، کرکيله، د ګبيه مچۍ، د ريښم چينجي، جسماني او ذهني سمونه او کرکيله کول دي ـ

په عربۍ، فارسي او اردو کښې د کلچر لپاره د تهذيب اصطلاح پکاروے شي۔ چې لغوي معني ئې تراشل او ښاخونه ريبل دي ـ په فارسۍ کښې د تهذيب معني آراستن پيراستن، پاک و درست کردن دي په اردو کښې د تهذيب معني شائستګي کوے شي ـ چې مونږ ورته په پښتو کښې ساهوتوب وئيلے شو۔ په لاطينۍ او انګريزۍ مفهوم کښې د کلچر يا تهذيب د ټولنيز ژوند معني مهمي دي لکه کرکيله، د ګبين مچۍ، د ريښمو چنجي وغېره د ټولنيز ژوند ښودنه کوي او دغه رنګ په عربۍ، فارسۍ اردو او پښتو کښې په ښکلي کولو، جوړولو، سمولو او ساهو کولو زيات زور په نظر رائحي که دغه دواړه مفهومونه مونږ په نظر کښې اونيسو او د دوې په مېنځ کښې د څۀ خاص ربط پېدا کولو هڅه اوکړو نو مونږ دا نتيجه تر لاسه کوے شو چې د ټولنيز ژوند په طور طريقو، رسمونو رواجونو او اقدارو کښې چې سمووالے، ښکلے والے، ساهو توب او ښکلا پېدا شي نو د کلتور او تهذيب نوم ورته ورکوے شي ـ په نور ټکو کښې داسې وئيلے شو چې د اجتماعي ژوند سمي، ښکلي، پاکې او ساهو قاعدې او طور طريقې کلتور او تهذيب دے ـ

د اردو ژبې مشهور ليکوال سبط حسن په خپل کتاب "پاکستان ميں تهذيب کا ارتقاء" کښې د تهذيب تعريف داسې کوي۔

"کسی معاشرے کی با مقصد تخلیقات اور سماجی اقدار کے نظام کو تہذیب کہتے ہیں۔ تہذیب معاشرے کی طرز زندگی اور طرز فکر و احساس کا جوہر ہوتی ہے۔ چنانچہ زبان، آلات و آوزار، پیداوار کے طریقے اور سماجی رشتے، رہن سہن، فنون لطیفہ، علم و ادب، فلسفہ و حکمت، عقایدو قانون، اخلاق و عادات، رسوم و روایات، عشق و محبت کے سلوک اور خاندانی تعلقات وغیرہ تہذیب کے مختلف مظاہر ہیں"۔1

په "Open Education Sociology Dictionary" کښې د کلچر تعریف داسې ورکړے شوے۔

"The attitudes, behaviour, beliefs, customs, habits, language and values that are characteristics of a group, society or organization in a particular place and time, the accumulated knowledge of which is passed to the next generation through socialization"2

د دغه دواړه تعریفونو په رڼا کښې مونږ وئیلے شو چې د یو مخصوص قام د رویو، عقیدو، رواجونو، رسومونو، عادتونو، قدرونو، توهماتو، رومانونو، نفسیاتو، رشتو، فنونو او ټول انفرادي او اجتماعي ژوند مجموعه کلتوردے ـ ټول ژوند دے په ټول ژوند خور دے ـ د ژوند عکاس دے او د ژوند تفسیر او تشریح دے ـ

دغه رنګ عمر فاروق په خپل مضمون "What is culture / Definition features and characteristics of culture" کښې د کلچر په اړه داسې لیکي:

"Culture is the Centre of a society and without culture no society even exist, it is the main difference between human beings and animals it is a heritage transmitted from one generation to another it includes all the wags and behavior in social life"3

د بره ورکړے شوي اقتباس نه که مونږ ته یو اړخ ته د کلتور ارزښت هم ښکاره کېږي نو بل اړخ د هغې د معني او مفهوم په پوهېدو کښې هم اساني پیدا کېږي ـ په کلتور کښې څۀ خوبۍ او خاصیتونه وي چې لاندې مختصر ورکولے شي۔

۱ ـ کلتور په حیاتیاتي توګه په میراث کښې مېلاوېږي بلکې په ټولنه کښې زده کېږي ـ

۲ـ په خپل اصل روح کښې دا انفرادي شے نۀ دے اجتماعي رنګ لري ـ

۳ـ داد یوې ټولنیزې ډلې یوه شریکه اثاثه وي ـ

۴ـ کلتور د یو نسل نه بل نسل ته منتقل کېږي ـ

۵ـ دا یو روان فطري عمل وي ـ

۶ـ کلتور یو مرکب شے وي ـ

۷ـ د کلتور اقدار او رسمونه په خپلو کښې تړلي وي ـ

۸ـ په مختلفو وختونو کښې په کلتور کښې بدلون رائحي ـ

۹ـ کلتور د ټولنې سره تړلے وي ـ

## د کلتور اجزاء، عناصر

په عمومي توګه د کلتور او تهذیب لاندیني څلور غټ اجزا په ګوته کیدے شي چې هر یو پکښې بیا نور واړه واړه کڼ اجزاء لري ـ

۱:د ابلاغ عنصر

۲ـ علمي عنصر ـ

۳ـ اخلاقي یا د رویو عنصر ـ

۴ـ مادي عنصر

د ابلاغ په عنصر کښې ژبه او علامتونه شامل وي په علمي عنصر کښې عقیدې، نظرئې، خیالات او توهمات شامل وي ـ علم، هنرونه او قدرونه هم د علمي عنصر نور اجزا دي ـ په اخلاقي او روایاتي عنصر کښې قاعدې، ضابطې، اولسي ژوند او د هغې دستورونه وغېره شاملې وي ـ مادي عنصر ته مادي کلتور هم وئیلے شي ـ په دې کښې هغه څیزونه شامل وي چې انسان ئې جوړه وي او د یو قام جمالیاتي ذوق پکښې شامل وي ـ

## شانګله

خيبر پښتونخوا د پاکستان د څلورو صوبو په شان صوبه ده ـ دا صوبه د پاکستان په شمالي مغربي سيمه خوره ده ـ په خيبر پښتونخوا کښې ټولې شپږ ويشت ضلعې دي ـ په دغه ضلعو کښې "شانګله" هم شامله ده ـ د ضلعې هيډکوارټر نوم ئې الپورۍ دے ـ دغه ضلع تر اوسه په دوه لويو تحصيلونو "الپورۍ" او "پورن "مشتمله ده ـ په شانګله کښې اته ويشت يونين کونسلونه دي ـ د 1995 نه وړاندې دا ضلع د ضلع سوات حصه وه او په لسمه جولائي 1995 کښې ورته د جدا ضلعې درجه ورکړے شوه ـ دا ضلع د صوبې تر ټولو پسمانده او د پاکستان دويمه پسمانده ترينه ضلع ده ـ د دوه زره اتلس د اعداد و شمار تر مخه د شانګلې آبادي 7,57,810ده ـ د دغه ضلعې ټوله رقبه 1,586 مربعه کلوميټره ده ـ د 51.48في صدي برخه ئې سړي او 48.51 في صد برخه ئې په زنانۀ مشتمله ده ـ د حکومت پاکستان بيورو آف سټيټيکس د ويب پاڼې تر مخه په آبادۍ کښې ئې د اضافې کليز اوسط 3.27في صده دے ـ

ضلع شانګله 34.31 او33.8درجې شمالي عرض بلا او د272.33 مشرقي طول بلا تر پرته ده ـ شانګله د ختيز اړخه ضلع بټ ګرام، تور غر او اباسين سره لګيدلې ده په لوئيديز کښې ئې د سوات ضلع پرته ده ـ په جنوب کښې ئې د بونير ضلع ده او د شمالي اړخ نه د ضلع کوهستان سره ئې پولې لګيدلې دي ـ دغه شان په جغرافيائي توګه دې ضلعې ته يو مرکزي او مهم مقام حاصل دے او د پاکستان په معيشت کښې مهم کردار لرونکي لاره "شاهراه ريشم" هم د دې ضلعې نه تېريږي ـ

د شانګلې د آبادۍ يوه واضحه اکثريت د مسلمانانو دے ـ د ټولې آبادۍ خو او شا 99.8 في صده آبادي د مسلمانانو ده او دغه باقي وړۀ شان آبادۍ کښې هندوان، عيسائيان او احمديان شامل دي ـ دغه معلومات د انټرنيټ په ويب پاڼه داسې ليکلې شوي:

“Almost the entire population is Muslim (99.8%) with every small number of Christians, Hindus and Ahmadis“. 4

هم په دغه اړه د شانګلې د 1998 سنس رپورټ داسې ليکي:

“All the inhabitants of the area are Muslims. Only a few Hindu families also reside in chakesar village. The Muslim relates to the hanafi school of thought. There are several religious schools in district shangla. “5

د ضلع شانګله په آبادۍ کښې د اقليتونو شمېره ډېره کمه ده ـ د شانګلې په مشهور کلي چکېسر کښې يو څو خاندانونه د هندوانو د ډېر پخوا راسې ميشته دي او دغه شان په ليلونۍ کښې يو څو تنه احمديان هم ژوند کوي ـ د دې نه پرته د آبادۍ واضحه اکثريت د مسلمانانو دے چې پکښې تقريبا ټول د حنفي مسلک منونکي دي ـ

دغه رنګې د ضلع شانګله د يو ښکاره اکثريت ژبه پښتو ده کومه چې د شانګلې سل في صد وګړي وائي۔ په ځينو سيمو کښې "ګوجري، هندکو، کوهستاني هم وئيلے کېږي خو د دغه ژبو خلک ټول په ټوله په پښتو ژبه پوهېږي او د ځائي وګړو سره هم د دوي په ژبه "پښتو" کښې خپل خيالات شريکوي ـ په ضلع شانګله کښې اوسېدونکي خلک د پښتو ژبي يوسفزۍ لهجه وائي او لېکي ئې خو د هغوې دغه لهجه د نورو سيمو د يوسفزۍ لهجې سره په بعضې ځايونو کښې واضحه فرق هم لري ـ لکه د مثال په توګه يو څو فرقونه دا دي:

| يوسفزئ لهجه | د شانګلې يوسفزئ لهجه |
| --- | --- |
| بهر ته | ورچيني |
| اخوا | لا غاړې، اغاړې، هغاړې |
| دې خوا | دې غاړې |
| دې خوا | ايسته |
| اخوا | ورته، هورته |
| دې خوا | دې پله |
| اخوا | هغه پلۀ |
| مريچي | اوومه |
| سبزني | پړے |
| اوړني | ترے، تروے |

| | |
|---|---|
| جامې | زړوکي |
| بستره | بس |
| پې مالګه | خوږه کونډۍ |
| اوګوره | سين ګړه |
| خپسه | سئي |

دغه شان يو شمېرنورې محاورې او ترکيبونه شته چې د شانګلې د اوسېدونکو په لهجه کښې خپل ځانګړے مقامي رنګ لري او په نوره يوسفزۍ لهجه کښې هغه شان نۀ شي کارولے ځکه چې په شانګله کښې کارولے شي ـ

## د ضلع شانګلې طبعي خدوخال

د ضلع شانګله د زمکې طبعي ساخت اګر چې د سيل ګرۍ په حواله زړۀ راښکونکے دے خو د موسم په حواله سخت دے ـ د شانګلې زمکه په وړو وړو واديانو کښې تقسيم ده او دغه وادۍ د دنګو دنګو غرونو په مېنځ کښې تر لرې لرې پورې غوزېدلې دي ـ په دغه دنګو غرونو کښې شمېر قدرتي ځنګلونه موجود دي ـ په دغه ځنګلاتو کښې د پيوچ، نختر، بنيا، غوز، بنج وغېره قيمتي ونې موجود دې ـ د سطح سمندر د شانګلې اوچتوالے اوسط د 2000 او 35000 ميټر په مېنځ کښې دے ـ په دغه اړۀ په انټرنيټ کښې د شانګله په وکي پيډيا کښې داسې ليکلے شوي دي:

"The average elevation of the district is 2000 to 3000 meters above the sea level; the highest point (3,440m) is near Kuz Ghanshal in the north of the district. "6

د دغه اقتباس نه تر ټولو اوچت مقام 3440 ميټره ثابتېږي او هم په دغه بنياد دغه اوسط د2000 او35000 ميټر تر مېنځ ټاکل شوے دے ـ هم دغه خيال د عبدالرازاق، فضل هادي او نورو د څېړنې نه هم په ډاګه کېږي ـ دغه څېړنه هم په انټرنيټ په لانديني سرخط موجود ده

"Exploration of medical plants and their conservation status at higher attitude of district, shangla, Khyber Pakhtunkhwa. "7

چې د پېښور پوهنتون د بائيو ډائيورسټي د مرکز د سيورې لاندې تر سره شوي ده دغه څېړنه ليکي:

"Shangla is one of the mountainous areas consist of small and narrow villages. These mountains are the western extremities of the great Himalayan ranges. The general elevation of the district varies from 2000-3500m above the sea level. "8

هم دغه څېړنه دعوي کوي چې د شانګلې ټوله رقبه چې 11528 ایکړه ده په هغې کښې په 8090 ایکړه زمکه د ځنګلونو ده ـ دغه دا خبره ثابتېږي چې د شانګلې تقریبا ټوله زمکه په غرونو او تنګو وادو مشتمله ده ـ د خپل دغه ځانګړي طبعي خدوخال په سوب د شانګلې موسم یخ دے ـ د یخنۍ موسم ئې ډېر زیات یخ وي او د نومبر په اخره کښې ئې په غرونو واورۀ پرېوتل پېل شي ـ د واورې پرېوتو دغه لړۍ تر مارچ پورې اوږده وي او په بعضې کلونو خو په اپریل کښې هم په اوچتو غرونو واوره پریوزي ـ دغه شان د ګرمۍ په موسم کښې هم بارانونه په کثرت سره کېږي ـ د شانګلې د اباسین سره لګېدلې لږ شان زمکه هواره ده ـ او د پورن تحصیل لږه زمکه هواره ده ـ د اباسین سره لګېدلې سیمې د نورو سیمو په نسبت ګرمې دي ـ په دغه سیمو کښې دیدل، کاچ او سینکړۍ مشهورې دي چې په نوره شانګله درجه حرارت د نقطه انجماد نه ښکته وي نو په دغه سیمو کښې موسم ښۀ وي ـ

اګر چې د شانګلې زیات تره اوسېدونکي د ذراعت د پېشې سره تړلي دي خو دلته چې په کوم زمکه فصلونه کرلے شي هغه ډېره کمه ده او د وګړو د خوراک ضروتونه نۀ پورۀ کوي د دغه موسم له وجې په اکثریتي سیمو کښې فقط یو فصل په ټول کال کښې پیدا کېږي ـ په غټو فصلونو کښې جوار، شولې، غنم شامل دي ـ د دې نه پرته دلته ګڼ شمېر مېوې هم پیدا کېږې چې پکښې تور املوک، سور املوک، مڼې، ټانګو، الوچې، اشاړے، خوبانۍ، چیرې وغېره شامل دي ـ په سبزیانو کښې هم دلته ځینې داسې علاقائي سبزیانې کېږې چې په نورو سیمو کښې نه تر لاسه کېږي ـ

## د شانګلې د مشهورو کلو نومونه

امنوي، کوټکے، ماچاړ، کسونه، الپورۍ، لیلونۍ، رحیم آباد (باسي) بېلے بابا، پاکورۍ، میاکلے، مټه اغوان، ډهېرۍ، کروړه، رانیال، چیچلۍ، سانګړۍ، بشام، شنګ، دندۍ، چکیسر، اوپل، دیدل، کاچ، کورمنګ، پورن، سنیله، سندوي، کولالۍ، مارتونګ، بورشټ، کوزکانا، شاه پور، برکانا، کارشټ، داموړۍ، کیکور، لودر، بلکانۍ، اولندر، اجمیر، لاړۍ، ګانشال او نور۔

## د خلکو د معاش وسیلې

په شانګله کښې زرعي زمکه ډېره کمه ده خو زیات تره خلق ئې د پیشې په اړۀ د زراعت سره تړلي دي ـ د دې ضلع خلق ډېر زیات محنتیان او هنر مند هم دي ـ ګرانې خوارې مزدورۍ هم کوي او یو واضحه اکثریت خلق ئې د کوئیلې د کان کنۍ خطرناکه او ګرانه مزدوري کوي ـ د دې نۀ پرته د اسلام آباد او نورو لویو ښارونو د تعمیراتو په شعبو کښې د شانګلې د خلکو یو واضحه اکثریت خواري مزدورې کوي ـ په بهر ملکونو کښې ګڼ شمېر خلق مزدوري کوي ـ لږ ډېر خلک ئې د تجارت د پیشې سره هم وابسته دي او ملازمت هم د یو شمېر وګړو د معاش ذریعه ده ـ څۀ خلک ئې څاروي اوګډې بیزې هم ساتي او د هغوئ نه په تر لاسه کېدونکې آمدن د ژوند ګاډے چلوي ـ چونکې د دغه سیمې ژوند ګران دے ـ سهولتونه نۀ لرې د روزګار موقعې پکښې نشته نو په دغه وجه د شانګلې نه نور سیمو ته د نقل مکانۍ رجحان ډېر زیات دے او ورځ تر ورځه په دغه رجحان کښې زیاتوالے رائحي ـ د دې نه علاوه په پنډۍ، اسلام آباد، حیدر آباد، چکوال، کراچۍ او نورو سیمو کښې د شانګلې خلک په ګڼ شمېر کښې اوسېږي ـ

## په شانګله کښې اوسیدونکي قبیلې

د1998 د سینس رپورټ تر مخه په شانګله کښې لاندینۍ غټې قبیلې ژوند کوي

۱ ـ افغان، پښتانه

۲ـ ګوجر، اجړ

۳ـ سیدان

۴ـ میاګان

۵ـ قریشي

د دې نه پرته په شانګله کښې په معقول تعداد کښې هغه قبیلې هم ژوند کوي چې د شانګلې د ګاونډي ضلعې کوهستان نۀ دلته په مختلف وختونو کښې راغلي دي ـ دغه خلک "کوهستانیان" یادېږي ـ

## د شانګلې لنډ تاريخ

وئيلے شي چې شانګله ته د "شانګله" نه مخکښې شانګله پار وئيل کيده وروستو ئې د نوم نه دغه "پار" ټکے ختم شه او يوازې شانګله پاتې شوه ـ خو څۀ موده وړاندې چې د سوات رياست نۀ و قائم شوے نو هغه ورځو کښې د شانګله او شانګله پار دواړو نومونه نۀ وه بلکې دې علاقې ته به "غرونه" وئيل کېدل ـ په دې سيمه چې کوم ګرځينده وېش او تقسيم وۀ د هغې تر مخه به په آبې او غرونه دواړو زمکو د قبيلو حصه رسېده او دغه رنګ موجوده شانګله "غرونه" به هم په سوات کښې د اوسېدونکو قبيلو په تقسيم کښې رسېده ـ د خپل طبعي ساخت له کبله چونکې دغه سيمه په غرونو مشتمله ده نو ځکه په "غرونه" مشهوره شوه ـ په دغه اړۀ سرن زېب سواتي په خپل کتاب "تاريخ رياست سوات" کښې ليکي:

"چنانچه د غرونو علاقې په ليلونۍ، چکېسر، مارتونګ، کاڼا بشام مشتملې وې چې د رياست ادغام اوشه او سوات د ضلع په حيثت د پاکستان يوه حصه اوګرځېده او د پاکستان افسران د شانګله په غره راغله نو چې د هغوې نه بيا چا په سوات پېښور کښې تپوس کوو چې چرته تلے وې نو هغه به وئيل چې شانګله پار ته تلے ووم او داسې په دمه دمه د غرونو د سب ډويژن نوم شانګله پار جوړ شو"ـ 9

هم په دغه اړۀ پروفېسر شجاع الملک وائي:

"په شانګله کښې اوسېدونکي خلق زيات تره يوسفزي دي چې د سوات نه تلي دي ـ د ګرځنده وېش په وخت کښې شانګله يوه غريزه سيمه وه ـ د سوات او شانګلې تر مېنځه چې کوم غر د حد فاصل کار کوي د دغه غر نوم شانګله دے ـ او هم په دغه نوم دغه ټوله سيمه يادېږي ـ" 10

د دغه ورکړے شوو رايو نه يوه خبره مخې ته راځي چې شانګله چې د غرونو سيمه ده په پخوانو دورونو کښې د هموار سوات د اوسېدونکو قبيلو دوتر يا جائيداد وۀ وروستو چې دغه وېش ختم شۀ او د سوات پښتنې قبيلې په خاصو علاقو کښې په مستقله توګه آبادې شوې نو څۀ قبيلې او د هغې

خلک په شانګله کښې په مستقله توګه آباد شول چې پکښې عزي خېل او بابوزئ وغېره شامل وي چې د یوسفزو ورېږ قبیلې دي ـ د دې نه پرته د شانګلې د تاریخ څۀ حوالې د 1000 عیسوي کال پورې رسي او وئیلے شي چې په دې سیمه کښې د محمود غزنوي په ورځو کښې د هغۀ جرنېل پیر خوشحال د اسلام تبلیغ پېل کړے وۀـ دغه شان دغه سیمه د دله ذا که پښتنو په قبضه کښې راغلي وه او وروستو په 14000 عیسوي کال کښې چې کله یوسفزو دله زاکو ته ماتي ورکړه نو دغه سیمه شانګله هم د هغوې په ولقه کښې راغله ـ په دغه اړه د1998 په په سینس رپورټ کښې داسې لیکلے شوې دي ـ

"It is said that the preaching of Islam in Shangla affected by Mehmood Ghaznavis brave General Khushal Khan in or about 1000 AD. Dalazak Afghans became the ruler of Swat and its allied areas in or about 1481 AD dalazak were defeated by Yousafzai pathans and the local Inhabitants were pushed to district of hazara, where thay are still residing and are known as Swatis. "11

د دې نه وروستو تر اوږدې پورې د قبائیلیت دور پاتې شۀ چې تریوې اوږدې مودې پورې خلک هم په دغه نظام کښې اوسېدل ـ او د دې نه وروستو کله چې په سوات کښې د والي حکومت اثرات راغلل نو د خواو شا سیمو په شان دغه اثرات د بونېر او نورو سیموپه شان شانګلې ته هم راورسېدل ـ او بیا په 1926 کښې په باقاعده توګه شانګله هم قبضه کړے شوه او په ریاست سوات کښې شامله کړے شوه ـ ډسترکټ سینس رپورټ لیکي:

"Similarly some other areas of the district i.e Kana, Ghowarband, Lilawnai, Besham, Chakaisar, Martung and Puran were brought in the administration in 1926. "12

دغه شان بیاتر کال 1995 پورې شانګله د سوات یوه برخه پاتې شوه او د دې نه وروستو د یوې جدا ضلعې په حیث پیژندے شي ـ د دغه ذکر شوو نزدې تاریخي آثارونه علاوه دا خبره هم د ذکر وړ ده چې په یو شمېرکتابونو کښې دا هم تر نظره کېږي چې سکندر اعظم چې اباسین طرفته کومه لاره نیولې وه نو په دغه لاره کښې هغه د شانګلې نه هم تېر شوے دے ـ او په شانګله چکېسر کښې د پیر سر په مقام باندې د دې ځاے دځائي وګړو سره جنګ هم شوے دے ـ دغه خبره د "Aurel Steim" د کتاب "on the Alexander track to Indus" نه هم ښکاره ده ـ د خپل کتاب په مقدمه کښې هغه لیکلي دي چې زما د سفر مقصد هغه لاره ښودل دي په کومه چې سکندر اباسین طرفته ته تلے دے ـ او په دغه سفر کښې هغۀ په شانګله چکېسر او پورن کښې وخت تېر کړے او بونېر ته تلے

دے ـ کوم چې ثابتوي چې سکندر اعظم هم د دې لارې نه تېر شوے دے ـ دغه شان د شانګلې په بعضې ځايونو کښې د پخواني بده تهذيب هم نخښې نښانې ځاے په ځاے تر لاسه شوي دي چې پکښې اولندر او اجمير شامل دي خو په دغه اړۀ د نورو څېړنو او پلټنو ضرورت دے ـ

## د شانګلې کلتور

د بر ذکر شوي خبرونه که يو طرفته د شانګلې په حواله څۀ بنيادي معلومات تر لاسه کېږي نو بل خواهغه بنيادي عناصر او محرکات هم په ډاګه کوي چې د يوې سيمې د خلکو په کلتور جوړولو او متاثره کولو کښې بنيادي کردار لوبوي۔ دغه عناصر دي چې په کلتور کښې ئې اثرات ډېر واضحه او ښکاره په نظر راځي او هم د دغه محرکاتو په رڼا کښې د يوې سيمې د کلتور لوسته تر ډېره حده موثره او کاميابه کېدے شي ـ مذهب، ژبه، جغرافيه معاشي حالات موسمونه وغېره د يوې سيمې د يو قام د کلتور خدو خال په ډاګه کوي ـ

### د اولسي ژوند قاعدې او دستور

کلتور چونکې د يوې ټولنې او قام د اولسي ژوند سره زياته اړۀ لري نو ځکه ئې په ټولنيز اولسي ژوند کښې لوسته کول زيات مناسب دي په دغه اړۀ چې د شانګلې اولسي ژوند ته ګورو نو زيات تره هغه عمومي قاعدې او ضابطې پکښې ښکاره په نظر راځي کومې چې د پښتنو د نورو سيمو کلتوري زاوئې دي ـ په شانګله کښې د جرګې نظام د پخوا راسې راروان دے، موثر دے او تر ننه د شانګلې جرګه د نورو سيمو په مقابله کښې زياته موثر او فعاله ده ـ د دې غټ ثبوت د ملاکنډ ډويژن تېره بدامنۍ کښې د دغه جرګې فعاليت وه چې تر ډېره حده ئې شانګله د دغه بدامنۍ نه محفوظه اوساتله ـ نن هم لوے لوے خانداني او قبيلوي شخړې په شانګله کښې د جرګې د لارې هواره وے شي ـ دغه شان په شانګله کښې د حجرې نظام هم ژوندے پاتې شوے ضرور دے خو خپل فعاليت ئې بائيللے دے او حجرې عملاً ختمې شوي دي ـ دغه جرګې اوس بيټکونو او دېرو ته بدلې شوي چې ورسره حجرې سره ترلے شوي يو شمېر کلتوري اړخونه تت شوي دي ـ دغه شان ننواتې، ولور، سوره، پېغور، مرکه، بدرګه وغېره قاعدې تر ننه په څۀ نه څۀ شکل کښې اوس هم په شانګله کښې موجود دي او هم په دغه دائره کښې دننه د هغوې اولسي او ټولنيز ژوند تېرېږي ـ مېلمستيا او د زنانو احترام او پرده هم د

نورو سیمو په مقابله کښې په شانګله مقابلتا زیات دي چې وجه ئې د میډیا د لارې د ثقافتي یرغل نه د شانګلې د خلکو لرې پاتې کېدل او کلیوال ژوند دے ـ

په ټولنیزه حواله د شانګلې د خلکو ژوند یو بل سره کلک تړلے دے او هم دغه وجه ده چې یوشمېر ټولنیز اقدار دلته تر اوسه فعال او ژوندي دي ـ د شانګلې په ټولنیز ژوند او جوړښت کښې پښتونولي ښکاره په نظر رائحي ـ کلے کلویغي، عزیزولي، اشر غوبل، ښېش برګه، قبر تخته، راشه درشه د شانګلې د ټولنیز ژوند ژوندي رسمونه او رواجونه دي ـ د مړي لاس نیوه تر یوې اوږدې مودې جاري وي ـ د ودونو مبارکۍ او رسمونه هم دغه شان موجود دي په دغه اړه دغه ټول اقدار د پښتونولۍ په رنګ کښې رنګ په نظر رائحي ـ د غم سره تړلي قاعدې دا دي ـ

قبر تخته، جنازه، لاس نیوه، د تعزیت ناسته، د غم ډوډۍ وغېره ـ د واده سره تړلي رسمونه دا دي، رشته غوښتل، ګل ورکول، کویژدن، خوږه کونډۍ، خپو له تلل، واده، جنج، ارته خپه او داسې نور ـ

د دې نه پرته د شانګلې په کلتوري ارزښت کښې هغه هنرونو او کسبونو ته هم بنیادي ارزښت حاصل دے کوم چې د دې سیمې اجتماعي ژوند روان ساتي ـ هغه کسبونه او هنرونه لاندې په لنډو وړاندې کولے شي ـ

۱ ـ ملاتوب

۲ ـ اهن ګري، اینګري

۳ ـ دروزګري

۴ ـ ترکاڼي

۵ ـ نندافي

۶ ـ شاه خېلي

۷ ـ زرګري

۸ ـ درزیتوب

۹ـ نائي توب

دغه ذکر شوي پیشې یا هنرونه هغه زاړه هنرونه دي چې په بدل کښې ئې دغه هنرمندانو یا کسب ګرو ته به د فصل یا نور جنس په صورت کښې معاوضه ورکړے کېده ـ دغه هنر مند او کسب ګرو ته به په ټولنیز کښې ژوند په درنه سترګه کتلے شو او هغوې به هم د ټولنې په ژوند کښې خپل کردار په موثره توګه لوبوو۔

## لباس او کالي پټري

د پښتونخوا د نورو سیمو په شان د شانګلې اوسسېدونکي هم د لباس او جامو پېزار هغه رنګ لري کوم چې د پښتنو کلتوري لباس دے ـ په یخنۍ کښې د کمیس او پرتوګ نه علاوه کمبلې په سره وي ټوپۍ یا پکولونه هم په ګڼ شمېر کښې کاروے شي ـ د زناناؤ لباس هم کمیس پرتوګ، لوپټه، پړونے دے ـ دغه شان بورقعه هم د زنانه لباس برخه ده ـ دغه شان هغه ټول د سرو اوسپینو زرو کالي په شانګله کښې کاروے شي کوم چې په نوره پښتونخوا کښې کاروے شي ـ څۀ پکښې داسې هم کالي شته چې اوس ئې استعمال ختم شوے دے ـ لکه اوربۍ، پېزوان، اوس چې کوم کالي استعمالوے شي هغه دا دي: والۍ، نتکۍ، بنګړي، ګوتۍ، چارګل، مېخکے، مندرۍ، جومر، ټیکه، ډیډي، هار او داسې نور۔

## خوراکونه

په شانګله کښې په عمومي توګه روټۍ (ډوډۍ) د خوراک لپاره کاروے شي۔ دغه روټۍ د غنمو او جوارو وي د دې نه پرته وریژې هم په اکثریت سره خلک د خوراک په توګه پکاروي ـ د دې نه علاوه په ناشته کښې د چائیو سره د عامې روټۍ استعمال عام دے ـ د چائیو کلچر په شانګله کښې نورو سیمو په مقابله کښې زیات دے ـ ویشلې، کورنې کېکونه، ککوړې (کلاکلې) غونزابې، مېچې او داسې نور علاقائي خوراکونه دلته د دې سیمې کلتوري خوراکونه دي ـ

سبزیانې چې کومې علاقائي دي هغه په ګڼ شمېر کښې خلک پکاره وي ـ د دې نه پرته غوښه او نور خوراکونه هم دلته خلک پکارۀ وي ـ په شانګله کښې کېدونکي لوبیا په ټول هیواد کښې مشهوره

ده او هم د دي ځاے روايتي کلتوری خوراک "پيتي" هم مشهور خوراک دے ـ دغه شان شوملی، ماسته، متر، کوچ، واربرۀ وغېره هغه خوراکونه دي چې د څاورو د پڅو سره تعلق لري ـ د شوملو نه تياره ونکي "کړي" هم د شانګلي علاقائي کلتوري خوراک دے ـ

**د ودانو انداز**

د شانګلي زياتره کورونه او ودانۍ تراوسه د خاورو خټو، ګټو او لرګو نه جوړ ېدي ـ دغه کچه کورنه دي ـ د دي نه پرته د سيمټو پاخه آبادي هم اوس زيات شوي دي ـ چونکي په شانګله واوره پر پوزي او بارانونه ډېر وي نو ځکه اوس د اکثرو ودانو په چتونو د ټن څادر لګولے شي ـ په عمومی توګه د کورونو ودانۍ فراخه او ارتېبيرتې وي په لرګي کنده کاري د شانګلی په ودانو کښې عامه وه يو شمېر دروازې،ستنې او سرياګانې به په ډېره ښۀ طريقه هنرمندانو کنده کولې په لرګي دغه کار به د جماتونو او حجرو په ودانو کښې ذيات کېدۀ اوس دغه رجحان زيات تره کم شوے دے او دغه پخوانے کار فقط د آثار قديمه په طور ځاے په ځاے موندلے شي ـ

**لوښي لرګي**

په عمومي توګه هغه ټول لوښي (کراکري) په شانګله کښې پکار ولے شي کوم چې دنوي دور د کارخانو پيدا وار دے خو دلته بايد چې دهغه لوښو ذکر اوشي کوم چې د دي سيمې خلق په مقامي توګه جوړه وي او پکاره وي ـ په دغه لو ښو کښې زياتره دلرګو نه جوړ کړي لوښې اوس هم ځاے په ځاے موندے کېږي چې په کښې خانکونه ،کونډۍ، پټنوسونه (ټرے)، جګونه، د لرګو ګلاسونه وغېره شامل دي ـ په موجوده دور کښې د لرګي دلوښو دغه کاروبار په نوے انداز کښې کولے شي او تردي چې د لرګو څمڅۍ ګرمي ډونګي (هاټ پاټ) تهرماس وغېره هم جورۀ ولے شي ـ د دي نه علاوه د خاورو لوښې هم دلته جوړولے شي چې په کښې پتيلي، خمونه او تبۍ شاملي دي د شانګلی د ارټ ښکلی نمونه هغه تونۍ ،کټکي او کرسۍ هم دي چې ځائي هنر مندانو به پري په لرګي زړه راښکونکي کنده کاري کړي وه ـ ددي نه پرته دلته داسي کټونه او کټکي هم عام ووکوم چې به د څاورو د څرمنې نه بونلے شوي وو ـ

## د ماشومانو لوبې

د نوي دور د غېر ملکي لوبو سره سم په شانګله کښې يو شمېر سېمه ايزي زړي لوبې هم موجودې دي چې جدا پرې پوره تحقيق کېدے شي دلته فقط د هغه لوبو نه يو څو نومونه وړاندے کوﻟﮯ شي۔

پټ پټونے،غل باچا، ګوتې ګوتې، شاه تورپی،سخے،ټیک ويشتے،کے ټوکرم،امپړه ککے،چيندرو،ميرګاټي، قط،ان پرى ان، بيلوري ، ميره ډبله او داسې نور۔

## موندنې

1 : شانګله کښې د هندومت او بدھ مت آثار ځاے په ځاے موجود دي چې باقاعده کار ته اړتيالري ـ

2 : د سکندر اعظم د شانګلي نه د تېرېدو او په شانګله د هغه د ځائی خلکو سره جنګ کېدل يو شمېر کتابونو ذکر کړي دي ـ

3 : شانګله په کلتوري حواله د دپښتو نخواه د نورو سېمو سره ډېر نزدې والے لري چې ور سره خپل ځانګړى کلتوري رنګونه هم لري ـ

4 : شانګلي ته د اسلام اثر د پير خوشحال په دور کښې رسېدلے دے ـ

5 : د شانګلي په اوسېدونکو پښتنو کښې زياتره داوسني سوات نه تلي پښتانه دي ـ

## ماخذونه


۱: سبط حسن، پاکستان میں تہذیب کا ارتقاء، بارسوم، کراچی، مکتبہ دانیال، 1981، ص ۱۳

۲: Sociologydictionary.org/culture/accessed on 24/03/2016.

۳: Umar Farooq, what is culture, definition, features and characteristics, of culture, SA, Study lecture notes, www.studylecturenotes.com, accessed on 25/03/2016.

۴: www.shanglafinnce.govt.pk accessed on 28/02/2016.

۵: District Censes report of Shangla, 1998, statistical Division, Govt: of Pakistan P.04

۶: https://en.m.wikipedia.org.accessed on 28/02/2016.

۷: District censes report of Shangla, 1998, statistical Division, Govt: of Pakistan, July 2000 Page No.6

۸: https://en.m.wikipedia.org accessed on 28/02/2016.

۹: http://www.pjsir.org/Editorial.process. Accessed on 28/02/2016.

۱۰: do

۱۱: سواتي، سرن زیب خان، تاریخ ریاست سوات، پېښور، پبلک ارګنائزیشن 1984 مخ 125

۱۲: شجاع الملک، پروفېسر، ټیلي فوني مرکه، نېټه 24/02/2016.

۱۳: District Censes report of Shangla, 1998, statistical Division, Govt: of Pakistan P.04

۱۴: Do P, 05